ورځپانه
# هیواد

مؤسس: عبدالرووف بېنوا | د تاسيس کال ۱۳۲۸ لمريز | چهار شنبه د شعبان المعظم ۶ مه ۱۴۴۶ ق کال، د سلواغې ۱۷ مه ۱۴۰۳ ل کال، د فبروري ۵ مه ۲۰۲۵ م کال، خصوصي گڼه ۵۳۶ مه، پرله‌پسې گڼه ۶۲۶ مه، اتمه دوره

## د ننګرهار له زندان څخه ۱۲۳ تنه بنديان آزاد شول

د عاليقدر اميرالمؤمنين (حفظه الله) د ځانګړي شفقت او فرمان په اساس، د ننګرهار له مرکزي زندان څخه ۱۲۳ بنديان آزاد او د ۳۲۱ نورو د بند موده کمه شوه.

د ننګرهار زندان رسنيز دفتر باختر آژانس ته ويلي، چې د عاليقدر اميرالمؤمنين (حفظه الله) د فرمان له مخې د دې ولايت له مرکزي زندان څخه ۱۲۳ تنه بنديان آزاد او د ۳۲۱ نورو بنديانو د بند موده راکمه شوې ده.

سرچينې همدا راز زياته کړې، چې په آزادو شويو بنديانو کې ۹۹ تنه نارينه او ۸ ښځې او ۱۶ ماشومان شامل دي.ورته مهال آزادو شويو زندانيانو د عاليقدر اميرالمؤمنين (حفظه الله) د فرمان هرکلی وکړ او وايي: دا اقدام د دوی د اصلاح او نوي پيل لپاره يو ښه فرصت دي، چې خپلې تېروتنې اصلاح او سالم ژوند غوره کړي.

## قــزاقستان:
## افغانـستان د سـيمې د ثـبات لپاره يو فرصت دی



په کابل کې د قزاقستان د سفارت شارژدافير له طلوع‌نيوز سره په ځانګړې مرکه کې ويلي ،چې افغانستان د مرکزي آسيا د امنيت او ثبات لپاره يو له کليدي عناصرو څخه دی.
کازيز اکباسوف په دې مرکه کې ويلي ،چې استانه افغانستان ته د يوه ګواښ په توګه نه‌ګوري.په کابل کې د قزاقستان سفارت شارژدافير زياتوي: (( افغانستان د مرکزي آسيا د امنيت او ټيکاو له کليدي عناصرو څخه دی. پر همدې بنسټ، د افغانستان د وضعيت د ارزونې له مخې، قزاقستان باور لري ،چې افغانستان د سيمې د ثبات او امنيت لپاره يو فرصت دی، نه ګواښ.))دغه قزاقستانی ډيپلومات د اسلامي امارت د رسميت پېژندلو په تړاو هم وايي ،چې هېواد يې د نړيوالو قوانينو پر بنسټ عمل کوي او ۳مخ

د يوناما مرستيال له ملا عبدالغني برادر سره په ليدنه کې:
## له افغانستان سره په بېلابېلو برخو کې خپلو مرستو ته دوام ورکوو

د رياست‌الوزراء اقتصادي مرستيال ملا عبدالغني برادر ماموريت (يوناما) له مرستيال ايندريکا راتوات سره ليدنه



اخوند پرون په خپل کاري دفتر کې په افغانستان کې د ملګرو ملتونو د مرستندوی وکړه.د رياست‌الوزراء اقتصادي مرستيال په افغانستان کې د طبيعي ۳مخ

د کرنې وزارت:
## افغانستان د لبنياتو د توليد برخه کې ځان بسياينې ته نږدې شوی



د کرنې ، اوبو لګولو او مالدارۍ وزارت وياند مولوي مصباح الدين مستعين وايي: اوس په افغانستان کې د لبنياتو د توليد يو شمېر لوی او منځنۍ شرکتونه فعاليت کوي، چې په دې منځ کې پنځو شرکتونو يې په نږدې وروستيو درېو کلونو کې پر فعاليت پيل کړی دی.مولوي مصباح الدين مستعين زياتوي، افغانستان اوس مهال د لبنياتو د توليد برخه کې ځان بسياينې ته نږدې شوی دی. دکرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ وزارت د وياند په وينا، هڅه کوي ، ترڅو په هېواد کې د لبنياتو د توليد صنعت په پياوړتيا سره له نورو هېوادونو څخه د لبنياتو واردات کم کړي .په همدې حال کې د کرنې او مالدارۍ خونه وايي، چې له کورنيو توليداتو او محصولاتو څخه ګټه اخيستل د دې لامل ګرځي څو د افغانستان اقتصاد زياته وده وکړي. دا په داسې حال کې ده، چې اسلامي امارت تل هڅه کړې څو د بېلابېلو سکتورونو په ځانګړې توګه د کرنې او مالدارۍ په پياوړتيا سره د افغانانو له اقتصاد سره مرسته وکړي او د لبنياتو د توليدي شرکتونو فعاليت ته پراختيا پيدا کړي.

## کندهار کې د سمنټو د توليدي کارخونې چارې ۹۵ سلنه بشپړې شوي



د کندهار په صنعتي پارک کې د سيمنټو کان ته څېرمه د سل ميليونه امريکايي ډالرو په ارزښت پر سل جريبه ځمکه د سيمنټو د کارخونې چارې ۹۵ سلنه مخته تللې دي. د دې کارخونې اداري مسئول عبدالباري ولي زاده وايي: د تخنيکي وسايلو له نصبولو وروسته به تر راتلونکو شپږو مياشتو پورې د سيمنټو توليد پيل کړي. نوموړی زياتوي ،چې دغه کارخونه به په لومړي پړاو کې په ورځني ډول يو زرو پنځه سوه ټنه سيمنټ توليد کړي او وروسته به دا کچه ۳مخ

۲ مخ | د اسلامي ارزښتونو او افغاني کلتور ساتنه کې د رسنيو رول

۲ مخ | د غير ضروري توکو واردول ګټور دي که زيانمن؟

۲ مخ | از وقت بايد استفاده درست بکنيم

### د ۱۶۴۶۰۰ ډالرو په ارزښت زمرد وپلورل شول

د پنجشېر د کانونو او پټروليم رياست مسئولينو پرون د دې ولايت له کانونو د تازه استخراج شويو زمردو د پلورلو خبر ورکړی دی.د دې ولايت د کانونو او پټروليم رئيس مولوي محمد قاسم اميري باختر آژانس ته ويلي، چې يو ځل بيا د هېواد پر سوداګرو يو زر ۹۱۰ قيراطه زمرد د ۱۶۴ زره ۶۰۰ ډالرو په ارزښت د کانونو د څارنې کمېټې، د سيمه ييزو چارواکو او سوداګرو په شتون کې د داوطلبۍ له لارې وپلورل شول .
مولوي اميري زياته کړه، چې له دې وړاندې هم د بولۍ له لارې د هېواد پر سوداګرو زرګونه قيراطه زمرد پلورل شوي دي.

## هـرات کې د کوچنيو صنايعو د ملاتړ په مـوخه اقـتصادي کنفرانس جوړ شو




د هرات ښار کې د کوچنيو صنايعو د ملاتړ لپاره ستر اقتصادي کنفرانس ترسره شو.
دا ستر کنفرانس چې موخه‌يې د فرصتونو ارزونه، د حل‌لارو وړاندې کول او د اقتصادي ودې لپاره د کوچنيو صنايعو رول پياوړي کول وو، د هرات والي شيخ مولانا اسلام‌جار، دولتي او خصوصي چارواکو، صنعتکارانو، ملي سوداګرو او د هرات ښار د اوسېدونکو په پراخ ګډون سره د مولانا بلخي په تالار کې ترسره شو.د هرات والي شيخ مولانا اسلام‌جار د دې کنفرانس پر مهال د کوچنيو صنايعو پر ارزښت او د هغوی د نقش په اړه خبرې وکړې او له پانګوالو يې وغوښتل، چې له خپلې زېرمه شوې شتمنۍ د کوچنيو صنايعو په برخه کې پانګونه وکړي، ۳مخ

## د بست تاريخي کلا عامه کتابتون پرانيستل شو



د هلمند ولايت د اطلاعاتو او فرهنګ رياست چارواکي وايي، په بست تاريخي کلا کې يې د ابن حبان البستي په نامه عامه کتابتون جوړ کړی.
دوی زياتوي: په دې کتابتون کې ۳ زره ټوکه بېلابېل کتابونه شته چې د يادې کلا د تاريخ او اهميت په اړه ليکل شوي کتابونه هم په کې شامل دي.د دوی په خبره، ډېر سيلانيان به د دې کلا د ليدنې پرمهال د هغې د تاريخي ارزښت په اړه نه پوهېدل، خو اوس به يې د دغو تاريخي کتابونو د مطالعې له لارې پوهاوي زيات شي. د بست کلا دکتابتون مسئول تازه ګل همت وايي : (( په دې کتابتون کې شاوخوا ۳ زره ټوکه کتابونه شته. دلته هره ورځ خلک راځي او د کتابونو مطالعه کوي.)) دلته راغلي سيلانيان هم د دې ګام ستاينه کوي او دغه کار د بست کلا په تاريخي ارزښت پېژندلو کې مهم ګڼي.دوی غوښتنه کوي چې د کتابتون ۳مخ

## زابل کې راستنو شويو کډوالو ته د ځمکو د وېش لړۍ پيل شوه




د زابل د کور او ښار جوړولو رياست وايي: د زابل جنوب طرفه ته له نورو هېوادونو څخه په جبري توګه د راستنېدونکو کډوالو لپاره د کډوالو په دويم نمبر ښارګوټي کې د ځمکو د الف، ب او ج فورمو د ورکولو لړۍ پيل شوه، چې پر مهال يې ګڼو مسئولينو ۳مخ

## هرات ښاريان: د افغانيو ارزښت پر ښه کېدو سربېره د توکو بيې لوړې دي



تېره جنورۍ مياشت کې د ډالرو پر وړاندې د افغانيو ارزښت راښکته شو ،چې ورسره په ټول هېواد کې د لومړنيو او خوراکي توکو بيې هم لوړې شوې.د هرات اوسېدونکي شکايت کوي، که څه هم اوس د افغانيو ارزښت لوړ شوی، خو لا هم د لوړو شويو خوراکي توکو بيې نه دي را ښکته شوې.دوی له مسئولينو غوښتنه کوي ،چې پر بازار دې څار ډېر او د خوراکي توکو بيې دې راښکته کړي.
هټيوال هم د خوراکي توکو د بيو لوړوالی مني او زياتوي، د بيو همدې لوړوالي يې بازارونه کمرنګه کړي دي.هټيوال احمد سهيل وايي: ۳مخ




# د اسلامي ارزښتونو او افغاني کلتور ساتنه کې د رسنيو رول

اسلامي ارزښتونه او افغاني کلتور زموږ د ملي هويت اساسي برخه جوړوي. د افغانستان تاريخ، ديني عقيدې، دودونو او ارزښتونو د خلکو ترمنځ د يووالي، وروروليۍ او خپلواکۍ روحيه پياوړې کړې ده. خو د نړيوال کېدنې، رسنيز پرمختګ او د لوېديځو کلتوري يرغلونو له امله، زموږ اسلامي او ملي هويت له جدي ننګونو سره مخ دی. په دې وضعيت کې د رسنيو مسئوليت يوازې د خبرونو خپرول نه دي، بلکې هغوی بايد د اسلامي ارزښتونو، افغاني کلتور او ملي هويت د ساتلو لپاره اساسي رول ولوبوي.

په اوسني عصر کې د انټرنېټ، ټولنيزو رسنيو او بهرنيو تلويزيوني چينلونو پراختيا د دې سبب شوې چې ځينې وارد شوي کلتورونه زموږ د ټولنې پر ارزښتونو منفي اغېزې وکړي. د فحشاء، اخلاقي فساد او غربي افکارو تبليغ هغه جدي خطرونه دي چې زموږ ديني او ملي هويت ګواښي. ځينې رسنۍ، چې د پرديو له خوا تمويلېږي، د داسې مفکورو تبليغ ته ژمنې دي چې زموږ له اسلامي عقايدو او ملي دودونو سره په ټکر کې دي.

افغان رسنۍ، چې د اسلامي نظام تر سيوري لاندې فعاليت کوي، بايد په لاندې برخو کې خپل مسئوليت ادا کړي:

د اسلامي او افغاني ارزښتونو ترويج : رسنۍ بايد د اسلامي اخلاقو، افغاني دودونو او ملي وياړونو د ترويج لپاره ځانګړي پروګرامونه چمتو کړي. اسلامي نظام ته ژمن خبريالان بايد د اسلامي تمدن د لاس ته راوړنو، افغاني مېړانې او د ديني ارزښتونو په اړه مثبت مواد وړاندې کړي.

د لوېديځ د فکري يرغل مخنيوی: بهرني کلتوري يرغلونه يوازې د نظام تهديد نه دی، بلکې د ټولنې د اخلاقي زوال لامل هم ګرځي. رسنۍ بايد پردي کلتوري يرغلونه افشا کړي او د ملت فکري دفاع وکړي.

د افغاني اتلانو او تاريخي شخصيتونو معرفي: زموږ تاريخي شخصيتونه، لکه احمدشاه بابا، ميرويس نيکه او نور مشران او دغه راز اتلان مو، لکه مرحوم اميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد، شهيد اميرالمؤمنين ملا اختر محمد منصور او داسې نور بايد نسلونو ته وروپېژندل شي، ترڅو ځوانان ترې د راتلونکي ازاد او خپلواک ژوند لپاره درسونه واخلي.

د ملي ژبو، هنري ارزښتونو او کلتوري ميراثونو ساتنه: پښتو او دري زموږ ملي ژبې دي او رسنۍ بايد د دې ژبو د ودې، ادبياتو او هنر پراختيا ته کار وکړي، نه دا چې د پرديو ژبو ترويج ته کار کوي.

د اسلامي او ملي مطبوعاتو پراختيا: رسنۍ بايد د اسلامي امارت تګلارې او ملي ګټې منعکسې کړي او بايد د ملي يووالي، ۳مخ

# په افغانستان کې د ماينونو او چاودېدونکو توکو په اړه انديښنې پر ډېرېدو دي




جميل باور

په دې وروستيو کې د ماينونو او چاودونکو توکو شتون د ګڼ شمېر افغانانو لپاره په ستر سرخوږي بدل شوی او هر ځل د رسنيو له لارې د دغه پټ دښمن له امله د هېواد له بېلابېلو ولايتونو د تنکيو ماشومانو د مرګ ژوبلې خبرونه اورېدل کېږي، چې ډېر خواشينوونکي او د انديښنې وړ دي، ځکه افغان ولس په څه د پاسه څلوېښت کلنه جګړه کې ډېر مالي او ځاني تاوانونه ليدلي او همدا اوس يې د تېرې پردۍ جګړې له امله په ډېرو کليو او بانډو کې د معلولينو په ګډون ګڼې نښې نښانې تر سترګو کېږي، داچې د الله (ج) له لورې پر افغانانو ستره پېرزوينه شوې او اوسني وخت کې د پردۍ تپل شوې جګړې په ختمېدو سره د آرامۍ سا اخلي، خو له ډېره بده مرغه همدا اوس هم په افغانستان کې پټ دښمن (ماينونه او ناچاودي توکي) ښکاره وژنې کوي او ګڼ شمېر افغان کورنۍ د وير پر ټغر کېنوي، په رښتيا هم نن سبا د افغانانو پر وړاندې ماينونه هغه پټ دښمنان دي، چې د هر چا ژوند ګواښلای شي، پر هېچا رحم نه لري او نه پر چا زړه خوږوي، په افغاني ټولنه کې به داسې کورنۍ ډېرې کمې پيدا شي، چې له ماين نه به بدې خاطرې ونه لري، ځکه د لسيزو جګړو په تېرېدو سربېره افغانستان اوس هم د هغو هېوادونو له ډلې شمېرل کېږي، چې لا هم د ځمکې لاندې خښ شوي ماينونه او له جګړې پاتې ناچاوده توکي په کې له ډېرو خلکو قرباني اخلي.

ياده دې شي چې لغمان کې څو ورځې وړاندې ۳ ماشومانو د هغې مرمۍ په چاودنه کې خپل ژوند له لاسه ورکړ، چې د غره لمن کې يې پيدا کړې وه او لوبې يې پرې کولې، همدارنګه په نورو ولايتونو کې همداسې ډېرې پېښې منځ ته راغلي، چې په پټه توګه يې د ناخبرو تنکيو ماشومانو ژوند ګواښلی، يا يې معيوب کړي او يا يې هم خپل معصوم روح د الله (ج) دربار ته سپارلي دی. په دې اړه د ملګرو ملتونو د بشري چارو د همغږۍ ادارې اوچا ريپورټ ورکړی، چې هره مياشت ۵۵ افغان ملکيانو ته د ماينونو په چاودنو کې مرګژوبله اوړي. دا په افغانستان کې د ماين او ناچاودو توکو په چاودنه کې د ملکيانو په تېره د ماشومانو د مرګژوبلې له ټولو وروستۍ پېښه وه.

اوچا ويلي؛ په افغانستان کې څه باندې درې ميليونه او درې لکه وګړي د ماينونو او ناوچاودو مهماتو په يو کيلومترۍ کې اوسېږي او ژوند يې له خطر سره مخ دی او افغانستان لا هم په شدت له چاودېدونکو توکو ډک دی.د افغانستان په جنوب کې کندهار،هلمند او زابل او په ختيځ کې کونړ او ننګرهار له هغو ولايتونو دي چې نسبت نورو ته په کې زيات چاودونکي مهمات او ماينونه پاتې دي،په دې اړه د ملګرو ملتونو د ماين پاکۍ د خدماتو ادارې UNMAS راپور ورکړی چې تېر ۲۰۲۴ م کال افغانستان کې د ماينونو په چاودنو کې د مرګ ژوبلو څه باندې اتيا سلنه ماشومانو په تېره هلکانو ته اوښتې ده.

په۲۰۲۴ م کال کې ۱۴۰ کسان د ماين په چاودنو کې وژل شوي او ۳۴۳ نور ټپيان شوي دي چې د وژل شويو له ډلې يې ۱۰۵ تنه واړه ماشومان په تېره بيا هلکان دي. تازه د امريکا د مرستو په بندېدو دا انديښنه لا دوه چنده شوې،چې په افغانستان کې به د ماين پاکۍ پروژې چې واردمخه يې فعاليتونه کمرنګه شوي له سقوط سره مخ شي.د ناروې د خلکو مرستندويه موسسه چې په بشري چارو او د ماين پاکۍ پر فعاليتونو بوخته وه تېره مياشت يې اعلان وکړ چې د امريکا د مرستو د بندېدو په سبب يې خپل فعاليتونه ځنډولي دي.دا انديښنه مخکې ورځو کې د ام. ډي. سي په نوم د ماين پاکۍ موسسې رييس شهاب الدين حکيمي هم کړې وه.ده خبرداری ورکړی و،چې که د ماين پاکۍ موسسو ته لازمه بوديجه برابره نه شي، په افغانستان کې به د ماين او مهماتو په چاودنو کې د مرګ ژوبلو شمېرې لا پسې لوړې شي.

« په ۲۰۲۴م کال کې موږ هره مياشت په افغانستان کې ۶۰ کسان تلفات درلودل. څرنګه چې اوس د ماين پاکۍ پروګرام تقريباً ۷۰-۸۰ سلنه په ټپه ولاړ دی، ممکن دا تلفات راتلونکی کال هم ادامه ولري او حتی زيات شي،ځکه کډوال له ايران او پاکستانه را روان دي، داخلي بېځايه شوي هم له موجوده سولې په استفاده ممکن خپلو اصلي مېنو ته ستانه شي.» د ملګرو ملتونو د راپورونو پر اساس دا مهال افغانستان کې يو ميليون او دوه سوه زره متره مربع ساحه په ماينونو او نورو ناچاودو مهماتو پوښل شوې ده. که څه هم اوس افغانستان کې جګړه نشته خو د روسانو د يرغل او په تېر شل کلن اشغال کې د ځای پر ځای شويو ماينونو او نورو ناچاودو مهماتو د چاودنو خطر پر خپل ځای پاتې دی، چې د دې لپاره سږ کال ۲۰۲۵ کې د ماين پاکۍ د فعاليتونو د دوام لپاره ټولټال ۲۱ ميليونه او نهه لکه ډالرو ته اړتيا ده.

دا په داسې حال کې ده، چې په نړيواله کچه په اوسط ډول په هر ساعت کې يو کس د ماين د چاودنې او يا له جګړو نه د را پاتې چاودېدونکو توکو له امله خپل ژوند له لاسه ورکوي، په افغانستان کې هم د تېرو څه د پاسه څلورو لسيزو پرله پسې جګړو دغه ميراث لا هم ملکي وګړي په ځانګړې توګه ماشومان په نښه کوي او يا يې د تل لپاره معيوبوي. لنډه داچې په افغانستان کې چاودونکو توکو د خلکو ژوند ګواښلی او د دې سبب شوی،چې خلک له فزيکي نيمګړتياوو لکه د وجود د غړو له لاسه ورکول، روحي فشار او اختلالات ، اضطراب او زور خپګان سره مخ کړي. خو ډېره د خپګان وړ خبره داده چې اوس د ماين پاکولو امکانات شته، خو د بوديجې د کموالي له امله يې د پاککارۍ کارونه په ټپه ولاړ دي. افغان ولس له تمويلوونکو سازمانونو هيله لري، چې د ماين پاکۍ پروګرام له سياسته لرې وساتي او د تېر په څېر دې له افغانستان سره مرسته وکړي،ځکه افغانان لا هم د جګړې له ميراثه رنځ وړي او په راتلونکي کې د افغان ولس لپاره په سوله ييزه توګه د ژوند کولو يوازينۍ لاره د جګړې د پاتې شونو پاکول دي، په دې کار سره به تر ډېره د چاودونکو توکو د ناڅاپي مرګونو کچه را ټيټه شي.

په دې برخه کې اسلامي امارت خپلې هڅې جاري ساتي او له چاودېدونکو توکو پاک افغانستان غواړي،خو متاسفانه چې په تش لاس هېڅ نه کېږي او دوی ګرم بلل کېږي، چې لا هم دغه پټ دښمن د تنکيو ماشومانو ژوند اخلي، نو راځئ له اوسني حاکم نظام سره اوږه په اوږه دغې ګواښوونکې پديدې ته د ختمېدو لارې چارې پيدا کړو، هغه داسې چې د رسنيو، منبرونو،ښوونځيو، مدرسو، پوسترونو او بنرونو له لارې عامو وګړو په ځانګړې توګه ماشومانو ته عامه پوهاوی ورکړل شي،د ناچاودو توکو بېلابېل اشکال ورته ښکاره شي او د تاوانونو په اړه ورته پوره وضاحت ورکړل شي، چې د امکان تر بريده دوی له داسې چاپېريال څخه ځانونه لرې وساتي، هلته چې ناپېژاندي توکي تر سترګو کېږي، دغه راز نړيوال خيريه بنسټونه ۳مخ

# د غير ضروري توکو واردول ګټور دي که زيانمن؟

رحمت‌الله فيضان

کنفرانسونه، سيمينارونه او علمي او سوداګريزې غونډې جوړول د پوهې، د تجربو د تبادلې او د بېلابېلو اړخونو ترمنځ د همکاريو د پراختيا مهم وسايل ګڼل کېږي.

د دې اهميت په رڼا کې، په هرات کې «د کوچنيو صنايعو اقتصادي کنفرانس» د هرات ولايت د مقام او اړوندو ادارو لەخوا جوړ شو. د سوداګرو او متشبثينو لپاره، د صنعتکارانو د ملاتړ لپاره، د توليد او صنعت لپاره، د عصري زيربناوو جوړولو، صنعتکارانو ته د ځمکې وېش، د کورني توليد ملاتړ د تعرفو لوړولو او د قاچاق د مخنيوي او د اداري پروسو پراسانه کولو ټينګار وکړ.

په دې کنفرانس کې، يو بروشور ووېشل شو چې وارداتي توکي پکې معرفي شوي وو او ډېر شمير يې غيرضروري ښکارېدل.

په دې بروشور کې هغه توکي ذکر شوي چې د ۱۴۰۳ لمريز کال د تېرو ۹ مياشتو په جريان کې افغانستان ته وارد شوي وو ، پکې ګوګړ (کبريت)، بسکويټ، د پردې راډ، د کباب سيخ، د بخارۍ وسپينز نل، شيدې، د پنير پوډر او نور مصرفي توکي شامل دي، چې کولای شو له هغو پرته ژوند ته دوام ورکړو او يا هم دا توکي دننه په هېواد کې توليد کړو.

په دې لړ کې، يوه انديښمنوونکې قضيه د نږدې ۳۱۲ ټنه نسوارو «سِيتي» واردات وو، چې واقعاً د تشويش وړ ده. «سِيتي» نصوار اساساً د تنباکو له پاڼو، چونې (آهک) او ځينو کيمياوي موادو جوړيږي ، چې




د خلکو د صحت او اقتصاد لپاره بې‌شمېره زيانونه لري. له دې سره، دا محصول لا دمخه د هېواد دننه په پراخه کچه توليدېږي، نو د وارداتو يې هيڅ اړتيا نشته.

د غيرضروري توکو د وارداتو زيانونه
» د اسعارو د وتلو لامل کېږي
» اقتصادي وابستګي زياتوي
» کورنی توليد کمزوری کوي
» بيکاري ډېروي
» تورم (انفلېشن) لوړوي
» د روغتيا لپاره تاوان لري

د غير ضروري توکو دا بې‌رويه واردات نه‌يوازې اقتصادي ګټه نه لري، بلکې ملي اقتصاد ته هم خطرناک تمامېدلی شي، ځکه چې د هېواد مالي سرچينې پر کورني توليد د پانګونې پر ځای، بهر ته انتقالېږي.

د غيرضروري وارداتو د کمولو او د کورني توليد د پياوړتيا لارې چارې دادي چې د غيرضروري اجناسو واردات يا بند شي يا يې تعرفې لوړې شي او پر ځای يې سوداګر او کسبه‌کاران وهڅول شي چې کورنيو توليداتو ته وده ورکړي. د بېلګې په توګه:

» د خوراک غوړيو د وارداتو پر ځای، بايد د کنجدو، زغرو او پنبه‌دانو د غوړيو توليد ته وده ورکړل شي.

» د تنبکو او سګريټو تعرفې لوړې شي، ترڅو د هغو مصرف راکم شي.

» د وارداتي شفتالو د کنسرو پر ځای، بايد د هرات او نورو ولاياتو شفتالو دننه په هېواد کې پروسس او کنسرو شي.

» د ګل افتاب پرست تخم د وارداتو پر ځای، بايد کروندګر وهڅول شي چې دا تخمونه دننه په افغانستان کې وکري.

د غيرضروري توکو بې‌رويه واردات نه يوازې د هېواد اقتصاد ته زيان رسوي، بلکې د کورني توليد د ودې فرصتونه هم له منځه وړي. که اقتصادي پاليسي داسې تنظيم شي چې کورنيو توليدوونکو څخه ملاتړ وشي او واردات په سمه توګه مديريت شي، نو ملي اقتصاد ته وده ورکولای شو او د خلکو لپاره د کار زمينې برابرېږي.

# از وقت باید استفاده درست بکنیم

عزیزی

شناخت وقت ،زمان و عمر بدون تردید که ارزشمند ترین دارایی انسانهاست،چراکه هرگز قابل برگشت نیست و دوباره بر نمی گردد و به عباره دیگر وقت را نمیتوان به کسی داد و نمیتوان از کسی قرض گرفت.فقط میتوان از زمان به نحو احسن استفاده کرد و ارزش وقت تنها دارایی مشترک میان انسانهاست که برخی درست از آن بهره می برند و حتی ثانیه ها برایشان ارزشمند است و در ثانیه ها موفقیت خود را مشاهده می کنند، وقت در واقع شیرازه حیات انسان را تشکیل می دهد. ارزش وقت از آنجا دانسته می شود که خداوند متعال در قرآن کریم سوره ای را بنام ((العصر))فرستاده و در جاهای دیگر از زمان اشاراتی داشته است. در احادیث نیز داریم که رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمودند:در روز قیامت از عمر انسان به طور عموم و از جوان به طور اخص پرسیده می شود که در چه راهی سپری شده و فرمودند:فراغت را قبل از اینکه مشغول باشی غنیمت بشمار.اولین و مهمترین وظیفه انسان مسلمان در برابر وقت خویش آن است که آنرا حفظ کرده و مراقب و مواظب آن باشد و باید بیشتر از مال از ارزش وقت مراقبت کرد،زیرا مال دوباره بدست می آید،ولی وقت بازگشت ندارد.دیده می شود که انسان‌ها در عرصه های مختلف زندگی از آن بصورت دوامدار فواید زیادی را بدست می آورند. تعدادی از انسانها نظر به استعداد های شان با بوجود آوردن اختراعات و اکتشافات همراه با علم و تخنیک مدرن برای بهتر زیستن شان در کره خاکی نیز نفع کسب کرده اند. به هر پیمانه یی که انسانها متوجه اهمیت وقت،زمان و عمر بوده به همان حد زندگی شان را در مسیر مثبت،پیشرفت و انکشاف استقامت داده، حیات خویش را نسبت به اندک زمان قبل در آسایش می‌نگرند، یک چیز کاملآ واضع و روشن است هرقدر که به اهمیت وقت توجه گردد،آن ضایع نشود و به آن عمل شود به همان پیمانه زندگی مرفه را نصیب می شوند و این زمینه آسایش را نه تنها برای خود میسر و مهیا میکند، بلکه برای تمام انسانها فراهم می سازد.دانشمندان و علماء واژه وقت و اهمیت آنرا چه زیبا و با ارزش بیان کرده و گفته اند»وقت گرانبهاتر از طلاست. زیرا صرف با استفاده از وقت میتوان طلا را بدست آورد، ولی دقایق تلف شده را نمی توان با طلا خرید»بناءً تاکید است به عموم هموطنان عزیز ما و بالخصوص اشخاصی که در هر جا به هر کاری که مامور و گماشته شده اند و به انجام آن مکلفیت و مسئولیت دارند، بوقت وزمان ارزش داده آنرا بیهوده از دست ندهند.در کشور های پیشرفته و مترقی جهان ثانیه را به هزار حصه تقسیم نموده و از هر قسمت آن کار گرفته اند، اگر آنرا با کشور خود مقایسه کنیم، آیا ما به کدام حدود بوقت و زمان ارزش میدهیم؟

اما افسوس که در کشور ما جوانانی داریم که ثانیه را بجایش بگذار،بلکه ماه ها و سالها وقت خود را بیجا تلف می کنند.

حالاکه اداره کشور بدست خود افغانها قرار دارد و افغانستان از اشغال امریکایی ها نجات یافته است. امیدوارم که با کار،تلاش و زحمات فراوان کشور خود را در قطار ممالک پیشرفته جهان از نظرسیاسی،اقتصادی، اجتماعی و فرهنگی برسانیم از محتاجی کشور خود را نجات و برای زندگی بهتر ص۳

# افغان اعلانات

## د داوطلبۍ خبرتیا

د دواطلبۍ ګڼه:خ.س.چ.ا.ش/ ۱۴۰۳/ پ.ک.د/توکي-۶ بیاځلی

د خوندي سندونو د چاپ امارتي شرکت، ټولو لیوالو داوطلبانو ته په خورا درنښت بلنه ورکوي تر څو د دې شرکت د اړتیا وړ د چاپ ماشینونو لپاره د پرزه جاتو او مصرفي موادو تدارک پروژې تدارکاتي پروسه کې ګډون وکړي، خپل سر تړلي/ بند آفرونه د شرطپاڼې د شرایطو، د تدارکاتو قانون او طرزالعمل سره برابر د ۱۴۰۳ کال د حوت میاشتې تر (۱۵ مې) نېټې، د سهار تر ۱۰:۰۰ بجو پورې، د کابل ښاروالۍ د اومې ناحیې اړوند، چهلستون عموي سړک د جنګلک پخوانۍ فابریکې داخل کې د خوندي سندونو د چاپ امارتي شرکت، دوهم پوړ کې د تدارکاتو آمریت ته تسلیم کړي. هېره د نه وي چې نا وخته او د بریښنالیک له لارې رسېدلي آفرونه نه منل کیږي.همدارنګه د یادونې وړ ده چې داوطلبان کولای شي؛ شرطپاڼه د فلش له لارې د تدارکاتو آمریت څخه او یا هم (Hadi.ahmadzai@ahsp.af او کاپي: mk.marwan@ahsp.af) بریښنالیکونو ته د بریښنالیک استولو له لارې تر لاسه کړي.داوطلبان مکلف دي؛ د آفر تضمین د شرطپاڼې د شرایطو سره سم، د (۶۰،۰۰۰) افغانیو په ارزښت، په بانکي او یا هم نقدي بڼه د خپل آفر سره یوځای وړاندې کړي. د یادې پروژې د آفر پرانستې غونډه د ۱۴۰۳ کال دحوت میاشتې په(۱۵ مه) نېټه، د سهار په ۱۰:۰۰ بجو د کابل ښاروالۍ د اوومې ناحیې اړوند، چهلستون عمومي سړک د جنګلک پخوانۍ فابریکې داخل کې د خوندي سندونو د چاپ امارتي شرکت، د غونډو په تالار کې نیول کیږي.

## د داوطلبۍ خبرتیا

د دواطلبۍ ګڼه:خ.س.چ.ا.ش/ ۱۴۰۳/ پ.ک.د/توکي-۱۰

د خوندي سندونو د چاپ امارتي شرکت، ټولو لیوالو داوطلبانو ته په خورا درنښت بلنه ورکوي تر څو د دې شرکت د اړتیا وړ د خوندی سندونو چاپ لپاره د دوه پایې (Gathering and Perforation) عصرې ماشینونو پروژې تدارکاتي پروسه کې ګډون وکړي، خپل سر تړلي/ بند آفرونه د شرطپاڼې د شرایطو، د تدارکاتو قانون او طرزالعمل سره برابر د ۱۴۰۳ کال د دحوت میاشتې تر (۱۸ مې) نېټې، د سهار تر ۱۰:۰۰ بجو پورې، د کابل ښاروالۍ اومې ناحیې اړوند، چهلستون عموي سړک د جنګلک پخوانۍ فابریکې داخل کې د خوندي سندونو د چاپ امارتي شرکت، دوهم پوړ کې د تدارکاتو آمریت ته تسلیم کړي. هېره د نه وي چې نا وخته او د بریښنالیک له لارې رسېدلي آفرونه نه منل کیږي.

همدارنګه د یادونې وړ ده چې داوطلبان کولای شي؛ شرطپاڼه د فلش له لارې د تدارکاتو آمریت څخه او یا هم (Hadi.ahmadzai@ahsp.af او کاپي: mk.marwan@ahsp.af ) بریښنالیکونو ته د بریښنالیک استولو له لارې تر لاسه کړي. داوطلبان مکلف دي؛ د آفر تضمین د شرطپاڼې د شرایطو سره سم، د (۱۶۰،۰۰۰) افغانیو په ارزښت، په بانکي او یا هم نغدی بڼه د خپل آفر سره یوځای وړاندې کړي. د یادې پروژې د آفر پرانستې غونډه د ۱۴۰۳ کال د حوت میاشتې په (۱۸ مه) نېټه، د سهار په ۱۰:۰۰ بجو د کابل ښاروالۍ د اوومې ناحیې اړوند، چهلستون عمومي سړک د جنګلک پخوانۍ فابریکې داخل کې د خوندي سندونو د چاپ امارتي شرکت، د غونډو په تالار کې نیول کیږي.

## د داوطلبیو خبرتیا

د ارزاقو امارتی شرکت د خپلو مرکزي او ولایتی د فترونو لپاره ۱۳ قلمه تکنالوژۍ وسایلو ( کمپیوتر ، پرنټر او ...) ته اړتیا لري بنا ټول هغه لوجستیکی او تجارتی شرکتونه چې د یاده برخه کې د تجربه او مالي توانمندی لري . کولی شي چې د ارزاقو امارتي شرکت ته چې د کابل مرکز ، دریمه ناحیه د مرکزی سیلو ترڅنګ موقعیت لري له (۰۴/شعبان /۱۴۴۶ ) نیټې نه چي د (۱۵/دلوي /۱۴۰۳ ) سره سمون خوري تر (۱۶/شعبان /۱۴۴۶ -۲۷/ لوی /۱۴۰۳ ) نیټی پوری د شرطنامه د ترلاسلو لپاره مراجعه وکړي د آفر تضمین په بانکی ډول د قبول وړ دی.

د آفرګشایی نیټه : ۲۷/ دلوه / ۱۴۰۳ مخکې له غرمی ۱۰:۰۰ بجی

نوټ : ناوخته رسیدلي او انټرنیټی افرونه د قبول وړ نه دي .۹۰۷۶

## اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم شرکت نوین احمدی لمتید یک عراده موتر پلیت ۲۵۱۶۷-۳ ش کابل نوع تیوتا کرولا چاپانی ویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای محمد یونس فرزند زر عالم بفروش رسانیده است.بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۰۹۹

## اطلاعیه تغیر مکان رهنمای معاملات

دفتر رهنمای معاملات برادران ویس وزیری دارنده جواز شماره ( ۵۱۴۴) به اسم محترم ویس الله فرزند عزیز احمد واقع ناحیه ۱۰ مقابل سرک بین سرک هشتم و نهم قلعه فتح الله موقعیت دارد و میخواهد به ساحه سرک ۱۱ قلعه فتح الله برج مامور عبدل ناحیه ۱۰ شاروالی کابل نقل مکان نماید . بناء مراتب به آگاهی شما رسانیده شد.۹۰۷۴

## اطلاعیه مفقودی

یک قطعه قباله شرعی نمبر ۱۷۲۸/۲۹۸ مورخ ۱۳۵۶/۹/۱۲ مرتبه محکمه وثیق حوزه سوم یک دربند حویلی واقع کارته آریانا ناحیه دوم به اسم عبدالجلیل فرزند محمد قدیر ولدیت محمد اکرم مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۰۸۸

## اطلاعیه به کرایه دهی

شرکت فارمسی ابن سینا تعمیر دواخانه شماره ۳۱ خویش را واقع مسجد سرور کاینات خیر خانه مینه ناحیه پانزدهم شهر کابل موقعیت دارد. در روشنی قوانین نافذه کشور به کرایه طور مزایده میدهد.اشخاص و افراد حکمی و حقیقی که خواهش قرار داد تعمیر شعبه متذکره را داشته باشند شرطنامه متذکره را از مدیریت ملکیت های مدیریت عمومی خدمات شرکت امارتی فارمسی ابن سینا در بدل ۱۰۰۰ افغانی پول غیر قابل بازگشت دریافت نموده جلسه آفرگشایی ۱۴ یوم بعد از نشر اخبار بروز معیینه ساعت ۱۰:۰۰ بجه قبل از ظهر در مقر شرکت امارتی فارمسی ابن سینا برگزار میگردد. تضمین طبق مقررات اخذ میگردد.۹۰۹۴

## اطلاعیه مفقودی

یک جلد کتابچه صفایی به اسم محمد حسین فرزند محمد عمر مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۰۷۹۲

## اطلاعیه مفقودی

یک قطعه ترجمه انگلیسی تولد کارت به اسم رشاد فرزند نجیب الله مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۰۷۸

## اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم شرکت نوین احمدی لمتید یک عراده موتر پلیت ۲۷۷۷۵۶-۲ ش کابل نوع تیوتا کرولا جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای شیرالرحمن فرزند سید الرحمن بفروش رسانیده است.بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۱۰۱

## د ترون د ورکړې د پریکړې خبرتیا

ټولو داوطلبانو ته خبر ورکول کیږي، چې د ټرانسپورټ او هوایي چلند وزارت په پام کې لري، د (هوا پیژندنې سټیشنونو د اړتیا وړ توکو او تجهیزاتو د تدارک) پروژه چې د RebidMOTA/1403/ 300 G-نمبرتشخیصیه درلودونکې ده، ترون یې د (عثمان سرور لوژستیکی خدماتو شرکت) سره په مبلغ (۲۸۷۲۱۰۸،۴۸) دوه میلیونه اته سوه دوه اویا زره یوسلو اته اعشاریه اته څلویښت افغانۍ ورکړي. ټول حقیقي او حکمي اشخاص چې په دې برخه کې نیوکې ولري، کولای شي خپله نیوکه، دې خبرتیا د خپریدو له نېټې څخه تر اووه تقویمي ورځو پورې په لیکلي بڼه د دلایلو سره یو ځای د ټرانسپورټ او هوایي چلند وزارت د تدارکاتو ریاست تدارکاتو آمریت ته وړاندې کړي .دا خبرتیا د ترون د عقد په مانا نه ده د ذکر شوې مودې تر بشپړیدو پورې به ترون عقد نه شي.

## از وقت باید استفاده...

اندیشه های نو و تازه را در اذهان افراد جامعه جاسازی کنیم در هر وظایفی که مسئولیت داریم باید کوشش و تلاش بخرج دهیم و وطن خود را آباد سازیم. بناءً برای هر فرد کشور لازم و ضروری است، اگر کارمند دولتی و یا کارمند خصوصی و در هر شغل دیگری که وظیفه دارند کوشا باشند تا از ضایع شدن وقت جلوگیری و خودداری کنند و از وقت استفاده درست نمایند تا مردم افغانستان از این بدبختی که میراث حکومت پیشین است رهایی یابند.

## په افغانستان کې ...

باید د اندېښنو پر ځای په دې برخه کې لاس په کار شي او هر څه باید د افغانستان پر سیاسي اړیکو او ډیپلوماسۍ پورې و نه تړي، ځکه په ټوله نړۍ کې یو بشر دی او هر څوک د خپل ځان په رقم درد او غم لري او بس.

## د اسلامي ارزښتونو...

اسلامي نظام او د اسلامي ژوند د اصولو ترویج ته لومړیتوب ورکړي.افغانستان یو اسلامي هیواد دی چې خپل مشخص کلتور، ملي هویت او تاریخي شالید لري. د دې ارزښتونو ساتل یوازې د حکومت مسئولیت نه دی، بلکې د رسنیو، علماوو او د ټولنې د هر وګړي مسئولیت دی. که چیرې رسنۍ خپل رول په سمه توګه ادا کړي، زموږ ملي هویت به خوندي پاتې شي او که یې غفلت وکړ، نو د افغاني ټولنې فکري او اخلاقي بنیادونه به کمزوري شي. له همدې امله، اړینه ده چې د افغانستان رسنۍ د اسلامي او افغاني ارزښتونو په دفاع کې منظم، قوي او رغنده رول ولوبوي، ترڅو مو ځوانان او راتلونکي نسلونه له کلتوري یرغلونو خوندي پاتې شي.

## یوه میاشت کې...

تېپان دي او د دوو وضعیت یې ډېر نازک دی.همدارنګه نتانیاهو غواړي د غزې د مذاکراتو له دویم پړاو څخه وړاندې له ټرمپ سره ووینې. د الجزیرې د خبر پر بنسټ، قطري چارواکو ویلي ،چې د اسرائیلو او حماس ترمنځ د اوربند د دویم پړاو مذاکراتو لپاره لا هم انتظار باسي، خو شایي نتانیاهو غواړي له مذاکراتو وړاندې لومړي له ټرمپ سره ووینې.الجزیره زیاتوي، چې امریکا غواړي پر اسرائیلو د یو میلیارد امریکایي ډالرو په ارزښت ۴۷۰۰ بمونه او نور پوځي تجهیزات وپلوري.په ورته وخت کې یونیسف ویلي ،چې په غزه کې بشري وضعیت لا هم خطرناک دی او باید له روان اوربند څخه د خوراکي او طبي مرستو د ترسره کولو لپاره ګټه واخیستل شي.

## د هند لومړی وزیر ...

د امریکایي امنیتي تجهیزاتو د پېرلو او د دواړو هېوادونو ترمنځ د سوداګریزو اړیکو په اړه ټیلیفوني خبرې کړې وې.

## اسلامي امارت ...

په موخه د هېواد په هره ولسوالۍ کې د یوه ۳۰ بستریز روغتون د جوړولو چارې پیل شوې دي. همداراز اسلامي امارت د وچکالۍ د مخنیوي په موخه د هېواد په کچه ټولو ولسوالیو کې د چکډېمونو چارې پیل کړې وې، چې د ډېرو چارې بشپړې شوي او پاتې نور به هم ډېر ژر بشپړ شي. نوموړي دغه راز د افغانانو په لاس د کابل-کندهار د ۵۰۰ کیلومتره سړک جوړول هم لویه لاسته راوړنه بللې ده.ښاغلي مجاهد زیاته کړې، اسلامي امارت پر اقتصاد او امنیت سربېره په بهرني سیاست کې هم ښه لوبېدلی دی.د اسلامي امارت ویاند ویلي؛ د اسلامي امارت پیل د اختلاف او کورنیو جګړو پر ضد شوي او له بل هر چا د یووالي پر ارزښت ښه پوهېږي، دا مهال د هېواد په هېڅ زندان کې سیاسي بندي نشته او په زندانونو کې د شکنجو اوازې بې بنسټه دي.مولوي ذبیح الله مجاهد ولس ته ډاډ ورکړي، چې هېواد کې د داعش ټول پټنځایونه له منځه وړل شوي او په افغانستان کې امنیتي وضعیت بېمثاله ښه دی.د نوموړي په وینا؛ اسلامي نظام بوربکۍ نه دی راوړی، چې د پروپاګند په پایله کې به پاشل کېږي او ترمنځ به یې اختلاف راځي. د فکر او عقیدې خلک څوک له خپلې موخې نشي لاس پر سر کولی.

د اسلامي امارت ویاند مولوي ذبیح الله مجاهد د امریکا د ولسمشر ډونالډ ټرمپ وروستیو څرګندونو ته په غبرګون کې زیاته کړې، د بګرام هوایي اډه دا مهال د اسلامي امارت د ځواکونو په واک کې ده.ذبیح الله مجاهد پر ایکس خواله رسنۍ یوه پروګرام کې د امریکا له لوري د بګرام اډې بیا نیول یو خوب او خیال بللی دی.ښاغلي مجاهد زیاته کړې، د اشغال له وخته پاتې وسلې او تجهیزات غنیمت دي او هیڅا ته به بیرته ورنه کړل شي په خبره یې، که څوک یې غوښتنه وکړي پر همدې وسلو به ځواب ورکړل شي.د یادونې وړ ده، چې څو ورځې وړاندې د امریکا ولسمشر چین ته د بګرام اډې د سپارل کېدو ادعا وکړه، هغه چې د اسلامي امارت ویاند په کلکه رد کړه او زیاته یې کړه، چې بګرام د افغانانو دی او هیڅکله به چاته د دې واک ور نه کړای شي.

## د افغانستان بانک ...

حسابونه د ورځې تر پایه پورې تصفیه کړي.په خبرپاڼه کې دغه راز یادونه شوې ده چې د معاملو قسمي ترسره کول مجاز نه دي او د لیلام ګټونکي دې د خپل ذمت پیسې ټولې یوځای نغدې او یا هم په حوالې سره په ټاکلې موده کې بانک ته تحویلي کړي.د افغانستان بانک د افغانیو پر وړاندې د ډالرو د ارزښت د کمښت په خاطر، د تېرې اونۍ په بهیر کې هم ۷۲ میلیونه ډالره وپلورل.

## له پېښو سره د مبارزې ...

په پراخه کچه عامه پوهاوي هم ترسره شي.ترابي همدارنګه وویل ،چې د پېښو له رامنځته کېدو وړاندې وقایه، د پېښو د رامنځته کېدو په صورت کې چمتووالی، ځوابدهي، بیارغونه او ماین پاکي د دې ستراتېژیک پلان عمده او مهمې برخې دي.ده له نړیوالو همکارو بنسټونو څخه هم غوښتنه وکړه، چې بشري موضوعاتو ته سیاسي رنګ ورنه کړي او د یاد پلان په تطبیق کې له دغې ادارې سره مرسته وکړي. نوموړي له اړوندو وزارتونو او ادارو څخه هم د دغه پلان د ښه تطبیق په موخه د همکاریو غوښتنه وکړه.په ورته وخت کې د یوې همکارې نړیوالې موسسې استازي عبدالرحمن هاشمي په یاده غونډه کې له پېښو سره د مبازې او چمتووالي ملي ادارې د دغه اقدام ستاینه وکړه او ویې ویل چې دغه ستراتیژیک پلان د افغانستان د طبیعي پېښو د خطرونو د کمولو او مخنیوي عملي لارښود ګڼل کېږي او له هغو بنسټونو سره به د چارو په ښو پرمخ بیولو کې ډېره مرسته وکړي، چې په دې برخه کې کار کوي.

د یادونې وړ ده، چې دغه ستراتېژیک پلان د افغانستان اقلیم او دلته د احتمالي پېښو د رامنځته کېدو په نظر کې نیولو سره د ټولو اړوندو ارګانونو سره په سلا مشورو د (۲۰۲۵-۲۰۲۹) کلونو لپاره جوړ شوی او تمه کېږي، چې د پېښو پر وړاندې د مبارزې او چمتووالي له ملي ادارې سره به د پېښو د ښه مدیریت په برخه کې ډېره مرسته وکړي.

## فراه کې د یوې پروژې ...

چې ورسره به د فراه ښار ښکلا نوره هم زیاته شي.ورته مهال د فراه اوسېدونکي د یادې پروژې په پلي کېدو خوښ دي او وایي، چې د یادې پروژې په پلي کېدو سره به د فراه ښار ښکلا څو برابره شي او له دولت څخه یې د ورته نورو پروژو د پلي کېدو غوښتنه کړې ده.

## د ملي دفاع وزارت ...

په ربا کې سرته ورسوئ.)) فارغانو هم په خپلو خبرو کې ډاډ ورکړ چې په هر راز شرایطو او د هېواد په ګوټ ګوټ کې خدمت ته چمتو دي.د مراسمو په پای کې، د مسئولینو له لوري فارغانو ته تصدیق پاڼې هم ووېشل شوې دي.

## افغانستان د سیمې ...

د ملګرو ملتونو د امنیت شورا پرېکړو ته ژمن دي.د قزاقستان د سفارت شارژدافېر زیاتوي، چې د اسلامي امارت له واکمنېدو وروسته، د کابل او آستانې ترمنځ اړیکې پراخې شوې او قزاقستان د ۲۰۲۱ کال له اګست میاشتې وروسته هم په کابل کې خپل سفارت نهدی تړلی او خپلو ډیپلوماټیکو فعالیتونو ته یې دوام ورکړی دی.اکباسوف دغهراز زیاتوي: قزاقستان لومړني هېواد و ،چې د اسلامي امارت نوم یې له ممنوعه نوملړه وایست ،چې د دې کار موخه له افغانستان سره د اړیکو پراختیا وه.ګازیز اکباسوف په دې اړه وایي: (( قزاقستان د سیمې لومړني هېواد و ،چې د طالبانو نوم یې د ممنوعه ډلو له نوملړه لرې کړ. زموږ موخه دا وه ،چې له افغانستان سره خپلې اړیکې وساتو او پرې نړدو چې، پرې شي. دا اقدام د سیمې نورو هېوادونو ته هم الګو وګرځېد او هغوی هم د طالبانو د تحریک نوم له ممنوعه نوملړه لرې کړ، د بېلګې په توګه قرغزستان هم همدا کار وکړ.)) ګازیز اکباسوف څرګندوي ،چې هېواد یې په افغانستان کې د بېخنبایي پروژو، کانونو، صنعت او انرژۍ په سکټورونو کې پانګونې ته لېوال دی.دی وایي: (( موږ د بنسټیزو پروژو، کانونو، صنعت او انرژۍ په سکټورونو کې پانګونې ته لېوال یو او په نږدې راتلونکې کې به موږ په دې برخه کې د عملي ګامونو شاهدان و اوسو.))دا په داسې حال کې ده ،چې د کابل او آستانې ترمنځ ډیپلوماټیکې اړیکې په ۱۹۹۲از کال کې پیل شوې او په ۲۰۰۲ کال کې په افغانستان کې د قزاقستان لومړنۍ ډیپلوماټیکه استازولۍ پرانیستل شوه چې، په ۲۰۰۳ کال کې پر سفارت بدله شوه.

## له افغانستان سره په ...

پېښو پر مهال زیانمنو افغانانو ته د یوناما له لوري له رسول شویو مرستو څخه مننه وکړه او له یاد بنسټ څخه یې وغوښتل ،چې په افغانستان کې د بشري مرستو په وېش کې شفافیت رامنځته او خپلې مرستې دې پراختیایي برخو ته واړوي، څو له یوه لوري هېوادوالو ته د کار زمینه برابره او بله خوا ورته د ژوند په مهمو برخو کې اسانتیاوې رامنځته شي.په افغانستان کې د یوناما مرستیال د خپلو خبرو پرمهال ویلي: دوی له اسلامي امارت سره په همغږۍ په افغانستان کې خپلو پراختیایي او بشري مرستو، راستنېدونکو افغانانو ته د اسانتیاوو برابرولو، د خصوصي سکټور ملاتړ، د کوچنیو او منځنیو کاروبارونو ملاتړ، د وړو پورونو له لارې په کلیوالي سیمو کې د کوچنیو کاروبارونو رامنځته کولو او همداراز افغان بزګرانو ته د کوکنارو د بدیل معیشت وړاندې کولو په برخو کې خپلو همکاریو ته دوام ورکوي.ایندریکا راتوات زیاته کړه: د افغان بزګرانو د ملاتړ په موخه به پر هغوی اصلاح شوي تخمونه او کیمیاوي سرې وویشي، کوچني بندونه به جوړ او کاریزونه به پاک کړي او همدارنګه به نړیوالو سوداګریزو مارکېټونو ته د افغان کرنیزو محصولاتو، صنعتي تولیداتو او لاسي صنایعو د رسېدو په برخه کې هم د لازمو اسانتیاوو رامنځته کولو لپاره هڅې وکړي.

## کندهار کې د سمنټو ...

تر پنځه زره ټنه پورې ورسېږي. ((د کندهار د سیمنټو د فابریکې ساختماني چارې بشپړې شوي دي، د لومړي فاز په جوړېدو سره به تر پنځلس سوه ټنه پورې تولید ولرو ،چې په راتلونکو شپږو میاشتو کې به بشپړ شي او په دوهم فاز کې به شاوخوا درې نیم زره ټنه تولید ولرو، چې د هغه په بشپړېدو سره به مکمل پنځه زره ټنه تولید ولرو.))

په ورته وخت کې د کندهار د صنعت او کانونو خونې مسؤل سید سرور اماني وایي: دا ډول پانګونې کولای شي ،چې په رغنیزه برخه کې هېواد پر ځان بسیا کړي او د نورو هېوادونو د سیمنټو د وارداتو مخه ونیول شي.د سیمنټو د دغې تولیدي کارخونې د فعالیت په پیل سره به دوه زره تنو ته کاري فرصتونه برابر شي.د سیمهییزو مسئولینو د معلوماتو له مخې، په دې وروستیو کې په کندهار کې پر رغنیزې برخې سربېره د حیواني دانې، غوړیو او اوړو څلورو کارخونو هم فعالیت پیل کړی چې د کورنیو تولیداتو د پیاوړتیا تر څنګ یې سلګونو کسانو ته کاري فرصتونه هم برابر کړي دي.

## هرات کې د کوچنیو ...

ځکه چې دا د ټولنې یوه مهمه اړتیا ده.د هرات والي پانګوالو ته ډاډ ورکړ؛ چې د ځمکې وېش، د برښنا برابرول او د بشپړې امنیتي زمینې برابرول به ورته آسانتیاوې شي.همداراز نوموړي ژمنه وکړه، چې د پانګوالو او د ولایت ترمنځ به هېڅ ډول واسطه شتون ونه لري او هر صنعتکار او پانګوال که له کومې ستونزې سره مخ شي، کولی شي پرته له کومې واسطې مستقیماً د ولایت مقام ته مراجعه وکړي یا د ځانګړو اړیکو د شمېرو له لارې تماس ونیسي، تر څو یې ستونزې ژر تر ژره حل شي.شیخ مولانا اسلامجار د بهرنیو وارداتو د لوړ بیلانس له امله اندېښنه وښوده او پر هغو کسانو یې کلکه نیوکه وکړه چې بهرنیو وارداتو ته د کورنیو تولیداتو پر وړاندې ترجیح ورکوي.نوموړي ټینګار وکړ چې پانګوال، علماء، پوهان، رسنۍ او پوهنتونونه باید په ګډه کار وکړي، تر څو هرات یو صنعتي ښار وګرځي او په نږدې راتلونکي کې د صادراتو او وارداتو ترمنځ توازن رامنځته شي.باید وویل شي چې دا ستر کنفرانس د پانګونې فرصتونو د معرفي کولو لپاره جوړ شوی و او د کوچنیو صنایعو د مادي او معنوي ارزښت په اړه هراړخیزې خبرې وشوې.صنعتکارانو، پانګوالو او علماوو د دې کنفرانس تود هرکلی وکړ او پانګوالو هم د کوچنیو صنایعو د اړتیا وړ برخو ته د پانګونې او د هرات په صنعتي ښارګوټي کې د لا ډېرو کارخونو د فعالولو لپاره د خپل چمتووالي ډاډ ورکړ.

## د بست تاریخي ...

لپاره دي اساسي ودانۍ جوړه او دغه راز دې د بست کلا بیارغولو ته جدي پاملرنه وشي.دهلمند د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست مسئولین وایي، د بست کلا د رغولو لپاره سروې ترسره شوې او هیله لري چې راتلونکي مالي کال کې به یې د رغولو چارې پیل شي.د هلمند د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست کې د فرهنګ او ګرځندوي آمر سلطان محمد حنیف وایي: (( په بست تاریخي کلا کې مو د ابن حبان بستي په نامه کتابتون جوړ کړی. موږ دا منو چې ځای یې تنګ دی، خو هڅه کوو، چې ساحه یې پراخه کړو او نور وسایل هم ور ولېږدوو. همدارنګه هغه آسانتیاوې برابرې کړو چې مطالعه کوونکي ورته اړتیا لري. د بست تاریخي کلا د بیارغولو او ترمیم سروې شوې او موږ هیله لرو په را روان مالي کال کې د اسلامي امارت په بودجه د دې کلا ویجاړې شوې برخې بېرته ورغول شي.))د هلمند د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست د مسئولینو د معلوماتو پر بنسټ، روان کال یې په بست کلا کې د ابن حبان بستي کتابتون ترڅنګ په ګرشک او سنګین ولسوالیو کې هم عامه کتابتونونه جوړ کړي دي.

## د افغانیو ارزښت ...

(( له هغې ورځې چې ډالر پورته تللی، فروشات ښکته راغلي او خلک د اخیستلو وس نه لري. یوه بشکه غوړي په ۹۰۰ افغانۍ و، اوس په یو زر او ۱۰۰ افغانۍ دي. له دولته غوښتنه کوو، چې ډالر له نرخونو حذف کړي، په افغانیو خرید وشي او په افغانیو وپلورل شي.))مسئولین پر بازار او پر نرخونو د دوامدارې څارنې خبره کوي او وایي: له احتکار کوونکو سره به جدي چلند وکړي.د هرات ښاروالۍ ویاند عبدالهادي نوري وایي: (( کمېسیون په اونۍ کې دوه ځله له بازارونو لیدنه او کتنه کوي او نرخونه د ښاروالۍ په کنټرول کې دي. له دوکاندارانو هیله لرو چې احتکار ونه کړي، بلکې له ولس سره همدردي او همکاري ولري. له احتکار کوونکو سره به د ښاروالۍ له خوا جدي او قانوني چلند وکړي.))هرات کې هغه مهال چې یو ډالر له ۸۰ افغانیو پورته تبادله کېده، د اوړو، غوړیو او وریجو بیو کې له ۲۰۰ څخه تر ۳۰۰ افغانیو لوړوالي راغی، خو اوس چې یو ډالر پر ۷۳ افغانیو تبادله کېږي، نرخونه ورسره نه دي راښکته شوي.

## زابل کې راستنو شویو ...

شتون درلود.د مسئولینو په خبره د ځمکې دا فورمې هغو کډوالو ته ورکول کیږي، چې د ۱۳/۸/۱۴۰۲ نیټې څخه بیا تر ۱۴۰۳ کال پورې، په جبري توګه راستانه شوي وي. د زابل د کور او ښار جوړونې رئیس ملا داد ګل مسلم ویلي؛ د کډوالو دویم نمبر ښارګوټي، چې څلور زره او ۳۳۰ جریبه ځمکه لري هغو راستنو شویو کډوالو ته به وېشل کیږي، کوم چې د ۱۳/۸/۱۴۰۲ نېټې څخه بیا تر ۱۴۰۳ کال پورې په جبري توګه راستانه شوي وي.دا په داسې حال کې ده، چې څه وخت مخکې د افغانستان د اسلامي امارت د لوړ رتبه مسئولینو له لوري د دې ولایت د شیخ متي ښار ګوټي هم په جبري توګه د راستنو شویو کډوالو لپاره پرانیستل شو، چې یاد ښارګوټی دوه زره جریبه ځمکه لري.

# Hewad Daily

چهارشنبه د شعبان المعظم ۶ مه ۱٤٤٦ق کال | د سلواغې ۱۷ مه ۱۴۰۳ ل کال | د 2025م کال د فبرورۍ ۵ مه



د ورځپاڼو رئیس : انجنیر عُزیر« بریالی»
موبایل : ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
آمر او مسئول مدیر : عطاء الله مبارز
موبایل: ۰۷۷٤۳۱۸۹۰۲
مسئول سکرتر: شېرمحمدنظري
موبایل: ۰۷۸۸۵۰۳۳۷۱

پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ
کابل - افغانستان
داړیکو شمېره: س ۰۲۵۲۶۳۴۰ - ۰۲۰
E-mail :info@hewaddaily.com
E-mail : hewad1948@gmail.com
دهیوادورځپاڼې انټرنېټي پاڼې دلاندې وېب سایټ له لارې هم کتلی شئ
وېب سایټ: www.hewaddaily.com
دشکایاتو اوتوزیع څانګه:
۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹-۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶-۰۷۳۶۰۶۰۷۳


## ذبیح الله مجاهد: اسلامي امارت له بل هر چا د یووالي پر ارزښت ښه پوهېږي



د اسلامي امارت ویاند ذبیح‌الله مجاهد د ایکس په یوې مرکه کې ویلي: د افغانستان اوسنۍ بودیجه په بشپړه توګه د هېواد له کورنیو سرچینو څخه تمویلېږي، په تېرو درېوو کلونو کې د نړیوالو له لوري ترسره شوې مرستې اسلامي امارت ته نه دي ورکړ شوي.نوموړي زیاته کړې: د مالیې وزارت تېر کال پر عادي بودیجې سربېره ۵۵۵ پراختیایي پروژې هم له کورنیو عوایدو تمویل کړي دي، چې اکثره یې بشپړې شوې دي. د اسلامي نظام له لوري د جبل السراج او غوري سمنټو د کارخونو جوړول لویه اقتصادي لاسته‌راوړنه ده، چې ډېر ژر به افغانستان د سمنټو له پلوه پر ځان‌بسیا شي.مولوي ذبیح الله مجاهد ویلي: روغتیایي خدمتونو ته د خلکو د لاسرسي **۳مخ**

## د افغانستان بانک نن ۲۵میلیونه امریکایي ډالره لیلاموي

د افغانستان بانک د افغانیو پر وړاندې د ډالرو د ارزښت د کمښت په موخه، نن چهارشنبه (۲۵) میلیونه امریکایي ډالره د سره، په شرایطو له برابرو ټولو صرافانو او تجارتي بانکونو څخه غوښتي، چې په دغو داوطلبیو کې ګډون وکړي او



لیلام په ډول پلوري.دغه بانک پرون د یوې خبرپاڼې په استولو د داوطلبۍ ګټونکي یې مکلف کړي چې خپل **۳مخ**

## کونړ کې د چارتراش لرګیو د قاچاق مخه نیول شوې

د کونړ د ځنګلونو د ساتنې قطعې په چپې درې ولسوالۍ کې د ۱۵۰ چارتراشو د قاچاق مخه نیولې ده.
د کونړ امنیه قوماندان ضیاءالحق وايي، چې د ځنګلونو د ساتنې قطعې ځواکونو د یو لړ عملیاتو په ترځ کې ۱۵۰ د چارتراش لرګي نیولي دي. نوموړي زیاته کړې، چې د لرګیو قاچاقچیان په تېښته بریالي شوي، خو د نیولو هڅې یې دوام لري.
نوموړي ټینګار کړی، چې هیچاته به اجازه ور نه کړي چې د هېواد ملي شتمني د قاچاق له لارې وپلوري او دا ډول غیرقانوني کړنې به په کلکه وځپي.

## له پېښو سره د مبارزې او چمتووالي اداري د ۵ کلن پلان مخکتنه وشوه




د اسلامي امارت له پېښو سره د مبارزې او چمتووالي ملي اداري د پنځه کلن سټراتیژیک پلان مخکتنه پرون په پلازمېنه کابل کې د یوې غونډې په ترځ کې ترسره شوه.
د یادې ادارې مشر ملا نورالدین ترابي په یاده غونډه کې وویل ،چې د دې پلان مسوده له جوړېدو وروسته ټولو اړوندو وزارتونو ته استول شوې او له هر اړخیزې ارزونې وروسته وروستۍ شوې او د ښه تطبیق په موخه به یې **۳مخ**

## د عامې روغتیا وزارت: تېر کال د سرطان ناروغۍ نږدې ۶۰۰۰ واقعات ثبت شوي

د عامې روغتیا وزارت د ویاند ډاکټر شرافت زمان د وینا له مخې سرطان ناروغي ورځ تر بلې په ټوله نړۍ کې په زیاتېدو ده، نو افغانستان کې هم سږ کال د تېر کال په پرتله مثبتې پېښې ډېرې شوې دي چې په نړیواله کچه یې د ډېرېدو علت د ډېرو خلکو نامنظم غذایي رژیم، الکولي موادو څخه ګټه اخیستنه او له دخانیاتو څخه استفاده ده. همدارنګه په افغانستان کې هم بېلا بېل علتونه لري چې د هغو له امله د سرطاني روغیو مثبت واقعات ډېر شوي دي، تېر کال په مرکز کې نږدې شپږ زره واقعات ثبت شوي دي او همدارنګه



نږدې دوه څلوېښت زره هغو ناروغانو مراجعه کړې ده چې له مخکې په سرطان اخته وو او یا هم نوي پرې اخته شوي دي. نوموړي همداشان ویلي دي: د عامې روغتیا وزارت هڅه کوي تر څو په زونونو او مرکز کې د سرطان ناروغانو لپاره منظم روغتیایي مرکزونه ولري تر څو دوی ته خدمات وړاندې کړي. سږ کال به نسبت تېر کال ته دا ښه وي چې د سرطان ناروغانو لپاره دوه سوه بستریز د درملنې مرکز ولرو او په نږدې راتلونکي کې به یې روغتیایي خدمتونه پیل شي. همدارنګه په پنځو زونونو کې منظوري شوې ده چې په هغو کې د سرطان ناروغانو لپاره خدمات پیل کېږي. همداشان په ننګرهار کې به په نږدې راتلونکي کې د سرطان ناروغانو لپاره د پنځوس بستریز روغتون په وسیله د یادو ناروغانو لپاره خدمتونه پیل شي.

## فراه کې د یوې پروژې چارې پیل شوې

د فراه ښاروالۍ مسئولین وايي، چې په دغه ولایت کې د شپږ ملیونه افغانیو په لګښت د سړکونو د روښانولو په موخه د یوې پروژې چارې پیل شوې دي.د یاد ولایت د ښاروالۍ ریاست د تخنیکي او سکټوري چارو آمر انجنیر شاه محمود جلالي باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې د ښاروالۍ ریاست له پراختیایي بودجې څخه د ۶ میلیونه او ۳۰۰ زره افغانیو په لګښت د ۲۲ سړکونو د روښانه ساتلو لپاره د څراغونو د ښیارغولو چارې پیل شوې دي.نوموړي زیاته کړې، چې د یادې پروژې چارې به د دوو میاشتو په موده کې بشپړې شي، **۳مخ**

## تخار کې د صنعتي ښارګوټي لپاره ۱۰۰۰ جریبه ځمکه ځانګړې شوه

د تخار په خواجه غار ولسوالۍ کې د عالیقدر امیرالمؤمنین (حفظه الله ) د ځانګړي فرمان له مخې د صنعتي ښارګوټي لپاره زر جریبه ځمکه ځانګړې شوه.د یاد ولایت مرستیال مولوي محمد نادر حقجو باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې ټاکل شوي پلاوي د عالیقدر




امیرالمؤمنین حفظه الله تعالي د حکم پر اساس د تخار ولایت په خواجه غار ولسوالۍ کې د صنعتي ښارګوټي د جوړېدو لپاره ۱۰۰۰ جریبه ځمکه ځانګړې او تثبیت کړې ده .په ورته وخت کې د تخار د صنعت او سوداګرۍ رئیس مفتي عبدالرحمن غزنوي هم وویل، چې د صنعت او سوداګرۍ وزارت ته د ځمکې له سپارلو وروسته به د صنعتي پارک د جوړېدو لومړنۍ چارې پیل شي.د یادونې وړ ده، چې په دې وروستیو کې د هېواد په بېلابېلو ولایتونو کې د صنعتي ښارګوټو د جوړولو لپاره د عالیقدر امیرالمؤمنین حفظه الله د ځانګړي فرمان پر اساس زرګونه جریبه ځمکه ځانګړې شوې ده،

## د ملي دفاع وزارت اړوندو سلګونو منسوبینو مسلکي زده کړې بشپړې کړې

د ملي دفاع وزارت، د جګړه ییزو ګډو زده کړو له قوماندانۍ څخه د سلګونو منسوبینو د فراغت خبر ورکړی دی.د یاد وزارت په خپره شوې خبرپاڼه کې راغلي چې د ملي دفاع وزارت د بېلابېلو قطعاتو او سیمه ییزو قول اردوګانو ٤۱۲ تنه ځوان منسوبین، د عبدالله بن مسعود (رض) د جګړه ییزو ګډو زده کړو قوماندانۍ د درې میاشتنیو مسلکي زده کړو له ترلاسه کولو وروسته، د فراغت سندونه ترلاسه کړل.د ملي دفاع وزارت د تعلیماتو او پرسونل معینیت مرستیال مولوي باز محمد حمیدي، په همدې مناسبت جوړو شویو مراسمو کې، فارغانو ته په خطاب کې ویلي دي: ((له خلکو سره ښه چلند وکړئ، د اسلامي ملي اردو په لیکو کې د اخوت او وروروڼلۍ فضا رامنځته کړئ او له کبر، غرور او تعصب څخه ځان وساتئ او ورسپارل شوي مسئولیتونه د شریعت **۳مخ**



## بهرني لنډ خبرونه

### لوېدیځه غاړه؛ یوه میاشت کې ۵۲۲ صهیونستي ضد عملیات ترسره شوي



د فلسطین معلوماتي مرکز «معطي» راپور ورکړی، چې د تېرې میاشتې (جنورۍ) په اوږدو کې په لوېدیځې غاړه کې ۵۲۲ صهیونستي ضد د مقاومت عملیات ترسره شوي، چې له دې جملې څخه ۱۷۶ عملیات ځانګړي، ۵۰ جګړه ییز او ۲۰ نورې وسله والې نښتې په کې شاملې دي.
دا عملیات د فلسطیني مبارزانو له خوا د اسرائیلي اشغالګرو پر وړاندې ترسره شوي، چې د فلسطینیانو د مقاومت او ملتپالنې یوه نښه بلل کېږي.د یو بل خبر له مخې: په لوېدیځه غاړه کې ۸ صهیونستي عسکرو ته مرګ ژوبله اوښتې د نړیوالو رسنیو د راپورونو له مخې، د فلسطین په شمال لوېدیځه غاړه کې د صهیونستي عسکرو پر ضد د فدایي برید له امله ۸ صهیونیستي عسکر ټپیان شوي، چې د دوو د مړینې راپورونه هم ورکړ شوي دي.د اسرائیلو د بېړنیو خدماتو ادارې تأیید کړې چې ۸ عسکر **۳مخ**

### د هند لومړی وزیر راتلونکې اوونۍ امریکا ته سفر کوي

رویټرز د سپینې ماڼۍ د یوه چارواکي له قوله راپور ورکړی، چې د امریکا ولسمشر ډونالډ ټرمپ د هند لومړي وزیر نریندرا مودي ته بلنه ورکړې، څو راتلونکې اوونۍ دغه هېواد ته سفر وکړي. ټاکل شوې چې مودي په دې سفر کې له ډونالډ ټرمپ سره په



سپینه ماڼۍ کې وګورې او خبرې اترې ورسره وکړي.دا په داسې حال کې ده چې د امریکا یوه نظامي الوتکه، چې له دغه هېواد څخه ایستل شوې هندي کډوال لېږدوي، هند ته روانه شوې ده.د روان کال د جنورۍ په ۲۷مه، مودي له ټرمپ سره **۳مخ**

### پر مکسیکو او کاناډا د امریکا د تعرفو ځنډېدل

د امریکا جمهور رئیس ډونالډ ټرمپ پر کاناډا او مکسیکو لګول شوې تعرفې د یوې میاشتې لپاره وځنډولې.د رویټرز د راپور له مخې، دا پرېکړه وروسته له هغې شوې ،چې د مکسیکو جمهورې رئیسې کلودیا شینباوم او د کاناډا صدر اعظم جسټین ټروډو له ډونالډ ټرمپ سره ټلیفوني خبرې وکړې.سرچینه زیاتوي ،چې د مکسیکو او امریکا جمهورو رئیسانو د ناقانونه کډوالۍ، د نشه‌يي توکو د قاچاق د مخنیوي او د دواړو هېوادونو تر منځ د پولو د امنیت د ټینګښت پر هڅو هوکړه کړې ده.دا په داسې حال کې ده چې پر چینایي توکو لګول شوې تعرفې لا هم پر ځای پاتې دي او په څو ساعتونو کې به عملي شي.

